مکاشفه ایډمن کتب سیریز

# دَعلم غیب

## شرعي مفهوم او تحقیق

پښتو ژبه کښې په علمِ غیبِ نبي علیه السلام باندے قرآن، حدیث او سلف الصالحینو اقوال سره دَ مکمل حواله جات



ترجمه، تحریروتحقیق

عمران اکبر مَلَک

ایډمن ، مکاشفه ورډپریس ډاټ کوم
مرکز تحقیقاتِ اهلسنت فورم پاکستان

# حرفِ آغاز

الله پاک دَ نامے نه شروعات کومه چې ډیر لوئے باچا دے او پس له درود او سلامونه په خوږ پیغمبر علیه الصلوٰة والسلام باندے چې بعد از خدا بزرګ توئي قصه مختصر، الحمدلله دَ مکاشفه ایډمن سیریز ترمخه یو بل کاوش ستاسو ته راوړاندے کوؤ چې دَ علم غیب په مضمون باندے یو سیرحاصل بحث باندے مشتمل یو داسے کتاب چې هر څوک په آسانَ پوهیدے شي، دَ خپلے پښتو ژبه کښې دا دَ خپل نوعیت یو انتهائي معلوماتې کتاب به وي او مونږ په کښې دَ قرآن شریف،سره سره دَ احادیثو مکمل حوالے ورکړې دي چه کتابي عکسونه اے زمونږ اهلسنت وجماعت آن لائن عکسونو لائبریرے کښے محفوظَ دي، څه دَ دې کتاب انتساب خپل مرحوم والدین ، اساتذه کرام او دَ مکاشفے ټول ایډمن ټیم ته کوؤم، الله دے زمونږ دا کاوش خپل دَ حبیب علیه السلام په صدقه کښې او دَ ټولو عبادالله الصالحینو په وسیله قبول وفرمائي، آمین بجاه النبي علیه السلام یا رب العالمین

احقر العباد، عمران اکبر خوئیزئي

پیښور پاکستان دسمبر ۲۰۱۶

بلغ العلیٰ بکمالہ
کشف الدجیٰ بجمالہ
حسنت جمیع خصالہ
صلو علیہ وآلہ












# بسم الله الرحمن الرحیم

علم یو عظیم قوت دے، دور جدید کښې علم اهمیت او قوت په نور رنړا سره رامخامخ شې، قرآن کریم انسان لیکل وئیلو او تحصیل علم اړخ ته متوجه کړئ دی (۱،۲) او انسان له اے هغه رازهائے سربسته وخودل چي دَ هغه دماغ ائ روښانه کړو. قرآن کریم دَ علم او دانش یوه عظیمه خزانه ده په دې کښې علم او مشتقاتِ علم په ۸۰۰ نه زیات مقاماتو باندے ذکر کړے شوے دے او دَ کتاب وکتابت ترحقله په ۶۰۰ مقامات باندے ذکر کړے شوے دی، دې نه دَ قرآن کریم په نظر کښې دَ علم اهمیت اندازه کیدے شې

نبي کریم صلي الله علیه وسلم فرمائیلي : څه به حیثیتِ معلم راستولے شوے یم (۳). تاسو دَ تحصیلِ علم ډیر زیات شدید تاکید فرمائیلی دی او دَ علم فضیلت ای آشکاره کړو (۴) .....حضرت علي کرم الله وجهه الکریم فرمائیلې چي (فضیلت خو تش اهل علم له پاره دے) (۵) خود په قرآن کریم کښې حضرت طالوت علیه السلام هوم دَ علم په وجه باندے دَ بنې اسرائیلو بادشاه جوړ کړی شوی او (۶)..... او هم دَ علم په وجه باندے حضرت آدم علیه السلام په فریښتو باندے افضلیت حاصل شوے وو(۷).....دې نه اندازه کیدے شې چه نبوت و رسالت او قیادت و بادشاهت له پاره علم سومره اهمیت لرې.

علم په دوه اقسامو باندے مشتمل دی...... یو خو هغه چي کم مونږ په مدرسو، اسکولونو، کالجونو، یا لیسه عالي یعني یونیورسټیانو کښې حاصلوؤ،،،،، او مونږ هم

دې شي نه علم ګڼړو او په دې يقين لرو خو يو علم هغه دئ چي کم براه راست تعليميږي.... دے له پاره نه دَ مدرسے ضرورت وي، نه اسکول، نه کالج او نه يونيورسټی،،،،،، دا يو پوشيده علم دئ چي څه ته قرآن حکيم (علم غيب) نوم ورکړے دے **(٨)**

حواله جات؛. (١) سوره علق: ٤/٥ ، (٢) سوره طه: ١١٤، (٣) ابن عبدالبر جامع بيان العلم وفضله ، پ ٤٧، (٤) ايضاً پاڼړه ٤٩، (٥) ايضاً پ ٤٦ (٦) سوره بقره: ٢٤٧، (٧)سوره بقره ٣١، (٨) سوره کهف: ٦٥

او په دئ ايمان راؤړل هر مسلمان لره يوه نښبه په شان ده (٩) ............ دا هغه علم دئ چي کوم نه انساني عقل ورته رسيدے شي او نه دَ هغے ظاهرې او باطنئ حواس..........دا علم په ټول علمونو باندئ غالب دئ او تحصيل و کسب سره هيچ تعلق نه لري،،،،،،دا محض دَ الله پاک په فضل او کرم سره لکه دَ باران وريږي، او لکه دَ چشمے خوټکيږي

قرآن کريم په ډيرو آيتونو کښے دَ (علم غيب) ذکر کړی دے او دا ی خودلې دې چي دا علم الله او صرف الله له پاره ثابت دے....... مثلاً دا آيتونه ملاحظه کړے

١؛ او هم هغہ سره کنجيانی دَ غيب دي، او هوم هغہ ای علم لرونکے دے(١٠)
٢:څه علم لرم دَ آسمانونو او دَ زمکو دَ هر پټ شيز (١١)
٣: ته وفرمايا، غيب خو الله له پاره دی (١٢)
:او خوړ پيغمبر عليه السلام ته اے اوفرمائيل چي تاسو هم اعلان وفرمائے چی

۴: تاسو وفرمائی، تاسو ته نه وئیمه چي ماسره دَ الله خزانے دي او نه دا اوئیم چي ځه (خپله) غیب علم لرم.

دې آیاتو نه معلومه شوه چي (غیب) هوم تش الله له پاره دے...... څوک هم ازخود (غیب) نه شي معلومولی او نه بغیر دَ الله دَ عطا نه جا سره ده الله پاک خزانے وې

په دې آیتونو غور کؤلو نه معلومه شوه چي الله پاک چرته هوم دا نه دې فرمائیلی چي دا (علم غیب) مونږ جالره نه ورکوؤ او دا خزانے مونږ چاله نه ورکؤ.......... او هم دا هغه اهمه نقطه ده چي مسلمانانو ته په غور وفکر کول په کار دي........
الله پاک رب العزت په قرآن کریم کښې ارشاد فرمائیلې:

۱- غیب علم لرؤنکے هوم هغه دے، نو هغه په خپل غیب باندے هیڅ څوک نه مطلع کوې، خو تش خپل برگزیده پیغمبرو (۱۴)

حواله جات؛ (۹) سوره بقره : ۳ ، (۱۰) سوره انعام: ۵۹ (ترجمه قرآن محدث احمد رضا خان) (۱۱) سوره بقره: ۳۳ (ترجمه قرآن ایضاً) (۱۲) سوره یونس: ۲۰ (۱۲) (۱) سوره انعام :۵ (ب) سوره هود : ۳۱، (۱۴) سوره جن: ۲۶ (ترجمه : اشرف علي تهانوې)

۲- او الله پاک په داسے امورِ غیبیه باندے تاسو نه خبروې خو هغه چي کم خپل په خوښه، او هغه دَ الله تعالی پیغمبران دي، هغوئ انتخاب وفرمائې (۱۵)
او بیا تش دا خبره نه ده چي ګني تش دا خبره شوې وئ او (علم غیب) عطا کړے شوے نه وې، نه نه، بلکه الله پاک خپل زبرګ پیغمبرانو لره دا علم ورکړے دی چي

دَ څه په حقله په قرآن کریم کښے تفصیل سره ذکر شته دے، مثلاً دا آیتونه ملاحظه کړے؛

۱۔ او علم ورکړو الله پاک، آدم له دَ هغو ټولو شئینو دَ نومونو بیا هغه شیزونه اے دَ فریښتو رامخامخ کړل (۱۶)

۲۔ حضرت داؤد علیه السلام له پاره اے اوفرمائیل....او چي کله منظوره وا هغو لره اے تعلیم وفرمائیل (۱۷)

۳۔ حضرت سلیمان علیه السلام دَ دے (علم غیب) ذکر په داسے طریقه وکړو چي فرمائيې: اے خلقو! مونږ له دَ مرغانو دَ ژبه (بولې) تعلیم راکړے شوے دے او مونږ له هر قسمَ شئینه راکړے شوې دي (۱۸)

۴۔ حضرت لوط علیه السلام له پاره فرمائیلې شوې دي: او لوط لره مونږ حکمت او علم عطا کړو (۱۹)

۵۔ حضرت یعقوب علیه السلام خپله هوم خپل ځامنو مخکښے دَ دي عطائے ربانی اظهار وکړو او اوئ فرمائیل:ولے! ما تاسو ته وئیلې نه وو چي دَ الله په خبرو چي سومره څه پوهیږم تاسو نه شئے (۲۰)

۶۔ حضرت یعقوب علیه السلام له پاره یو بل ځائے کښے ارشاد شوے دے: او بلاشکَ هغه لوئے عالم وو په دي وجه چي مونږ ورله علم ورکړے وو خو اکثر (خلقه) دَ دے علم نه لري۔ (۲۰)

۷۔ حضرت یوسف علیه السلام له پاره فرمائیلې شوې دي: او چه کله هغه خپلے ځوانے ته ورسیدلو نو مونږ ورله حکمت او علم عطا کړو (۲۱)

۸۔ او حضرت موسیٰ علیه السلام ترحقله ارشاد شوے: او چي کله هغه خپل ځوانَ ځوانے ته ورسیدلو او درست شو، نو مونږ ورله علم او حکمت عطا کړو (۲۲)

حوالے؛ (۱۵) سوره آل عمران : ۱۷۹ ایضاً ، (۱۶) سوره بقره :۳۱ (ایضاً) (۱۷) سوره بقره: ۲۵۱ (۱۸) سوره نمل: ۱۶(ایضاً) (۱۹) سوره انبیا: ۷۴، (۲۰) سوره

یوسف : ۶۸ (ترجمه  مولوي اشرف علي تهانوې) (۲۱) سوره یوسف: ۹۶ (۲۲) سوره یوسف: ۲۲ (ایضاً) (۲۳) سوره قصص: ۱۴ (ایضاً)

۹- او حضرت خضر علیه السلام په حقله فرمائیلی: هغوې زمونږ په بندګانو کښې یو بنده پائیلو چي چاله مونږ خپل خاص رحمت ورکړے وو او مونږ خپل ترمخه ورله خپل دَ اړخه خاص طور باندے علم ورکړے وو (۲۴)

دې آیاتو نه معلومه شوه چي الله پاک خپل برګزیده پیغمبرانو لره (علم غیب) عطا کړے دے خو اکثر مخلوق ترخبر نه دے...... دوئ محترم حضراتو کله کله دَ دے علم اظهار هم فرمائیلے دے څنګه چي په قرآن کریم کښې دَ حضرت عیسی علیه السلام خپل پیروکارو ته دا ارشاد فرمائې

۱- او څه به تاسو ته درؤخیم چي کم تاسو په خپل کورونو کښې خورئ او چي کم تاسو په کښې پریخې دې (۲۵)

یعني چي هرچا چي څه په خپل کور کښې خوړاکه کړے وه او چي څه اے په کورونو کښې ایښوستې دې هغه ټول ستاسو په نګاه نبوت کښ او........حضرت یوسف علیه السلام په قیدخانه کښی قیدیانو ته دَ هغوې دَ خوبونو تعبیر خؤدَلو نه مخکښې فرمائې:

۱۱- چي کم خوراک تاسو لره راځې او چي کمه تاسو له خوراک له پاره ملاویږې څه دَ هغې راتلو نه وړاندے تاسو ته دَ هغې حقیقت بیان کړم، دا خاؤدل په هغه علم په بدولت دے چي کم ماله ځما رب تعلیم فرمائلے دے. (۲۶)

دے آیتونو نه معلومه شوه چې الله پاک خپل خوږ او برګزیده پیغمبرانو، رسولانو له علم غیب عطا کړے وو، دَ دے عطائے خاص نه انکار کول، دَ قرآن انکار دے........ دا علم څه معمولی علم نه دے بلکه ډیر په اهتمام او تیارے نه پَس له ورکړے کیږې او چې چا لره عطا شي دَ هغے مخکښې روسته دَ فریښتو پهرے ولګوَلے شې........ ارشاد فرمائیلې شوې دې:

نو هغه په خپل غیب څوک نه اطلاع کوې، خو، آؤ خپل چرے برګزیده پیغمبر نو بیا دَ هغے (یعنې پیغمبر) مخکښے او روستو محافظان (فریښتے) وروليږې. (۲۷)

بے شکَ چې چالره دا علم ورکړے شوے دے هغه له نور ډیر څیزونه هم عطا کړی شوی وې.......او دا چې تمام انبیائے کرامو له یکسان یعنې په یو شانَ علم غیب نه دے ورکړے شوے بلکه چې څنګه په ابنیاؤ او رسولانو کښے درجات دې. (۲۸)

حوالے؛. (۲۴) سوره کهف: ۶۵..(۲۵) سوره آل عمران : ۴۹ ... (۲۶)سوره یوسف: ۳۷ ترجمه اردو مولوي اشرف علي تهانوې.....(۲۷) سوره جن: ۲۶.... (۲۸) سوره بقره:۲۵۳

دغه شانے (علم غیب) هم درجه به درجه عطا کړے شوے دے. ....دَ قرآن کریم نه دَ دې خبرے تصدیق کیدے شې. حضرت موسیٰ علیه السلام دَ حضرت خضر علیه السلام سره ملاقات شوے وو او حضرت موسیٰ علیه السلام ورنه هغه (علم غیب) ایزدکولو درخواست کړے وو چې کم الله پاک هغو لره عطا کړے وو.
حضرت خضر علیه السلام درخواست منظور کړو خو ورته اے اوئیل او هدایت وکړو چې (تش به ګورے، وئیل به نه کوے چې ترکمے څه درته ونه وئیم) (۲۹).......... حضرت خضر علیه السلام چې هرڅه چې کؤل، هغه دَ حضرت

موسی علیه السلام په فکر کښې نه راتلو، آخر نا پوهیتیا کښې پاتې نه شولو او تپوس ئ تر وکړو، نو حضرت خضر علیه السلام دَ راز نه خو پرده اوچته کړه خو بیا حضرت موسی علیه السلام ئې ځان سره پري نه خو.... دا ټول تفصیل په قرآن کریم کښې موجود دے (۳۰)......دې واقعې نه اندازه کیدلے شي چي تمام انبیائے کرامو له یو قسمه یا یو برابر علم غیب نه دے عطا کړے شوے.

علم غیب ، زمونږ خوږ پیغمبر علیه السلام له هوم عطا کړے شوے دے...... دا علم غیب ستاسو یوه غټ معجزه وا، مختلف انبیائے کرامو لره مختلف معجزات ورکړے شوې وو خو خوږ پیغمبر علیه السلام له هغه هرڅه ورکړے شوی چي کوم کم وبیش یو لک ۲۴ هزار انبیائے کرامو معجزات ورکړے شوې وو او دَ هغې ټولو نه سیوا هوم الله ته معلومه ده چې څومره زیات علم ورکړے شوے دے چونکه خوږ پیغمبر علیه السلام دَ ټول انبیائے کرامو دَ صفاتِ حسنه نه متصفه او او دَ هغوئ دَ کلهم علوم و معارف جامع هوم وو

خوږ پیغمبر علیه السلام له چي څه ورکړے شوې دې هغې متعلق ارشاد شوے دے

او تاسو ته تعلیم کړے شو هغه هر څه چي کم تاسو ته معلومه نه وه او (دا) دَ الله په تاسو (علیه السلام) باندے لوئے فضل دے۔ (۳۱)

دې آیت نه پته ولګیده چه اوس داسے هیس څیز پاتے نه دے چي دَ څه نه تاسو علیه السلام خبر نه ایستے، او دے نعمت ته الله پاک (فضل عظیم) وئیلې دې،،،،،خوږ پیغمبر علیه السلام ته چې هرڅه تعلیم شوې دې، هغه ورته الله تعلیم کړې دې (۳۲)........ که استاد، شاګرد ته دا خبره وکړې چي (ما تاته هرڅه تعلیم کړې دې چي دَ کمے نه ته خبر نه وے) نو دا حق دے، ګستاخي او بے ادبې نه ده

حوالې؛ (۲۹) سوره کهف: ۷۰ . (۳۰) سوره کهف : ۶۴ تا ۸۲ ترجمه مولوي اشرف علي تهانویؒ. (۳۱) سوره نسا: ۱۱۳... (۳۲) سوره اعلي: ۶

خو که څوک شاګرد، خپل استاذ ته دا ووائي : (ته خو دَ هیس نه هوم خبر نه وې، ستا استاذ ته خبر کړے) نو دا سراسر بې ادبي او ګستاخي ده او تاریخِ انسانیت کښې داسې بې ادبه شاګرد به چا نه وي کتلے......... الله پاک ، خوږ پیغمبر علیه السلام له دا علم ورکړے، چه هر څه چي ورته عطا شوي دي هغه دَ الله ترمخه دي نو که هغې په قرآن کریم کښې دَ عطا نه وړاندې کیفیت دغه شانې بیان کړے دے چي ............... ما تدرئ مالکتب ولا الایمان (۳۳) ، نو دا دي الله دَ شان لائق دے، خو مونږ له زیب نه ورکوي چي لکه ده بې ادبه و ګستاخ شاګرد په شانِ ستاسو علیه السلام په حضور کښې هغه الفاظ استعمال کړو چي کوم الله پاک جل مجده تاسو له پاره فرمائیلي........... بې شکَ چي الله پاک تاسو لره علم غیب عطا کړے دے او چي که څوک انسان دَدې فضل الهیه انکار کوي یا په دے کښې تخفیف یعنیٰ کمې راولي هغه دَ الله ده فضل نه انکاریٰ دے نو هغې ته به څوک مسلمان ووائي؟

دَ موحد شان خو دا وي چي دَ الله دَ هر هر حکم فرمانبرداریٰ کوي، په دَ پاسه عملګزار هوم وي او نورو ته هم تلقین کوي، دَ خوږ پیغمبر علیه السلام دربار یو ډیر لوئې دربار دے، دَ هغوي په حضور کښې په اوچت آواز کښې وئیلو والاؤ هوم ټول اعمال ضائع شي..... دَ هغوي په محفل مبارک کښې بلااجازت اوردیدلو والاؤ له پاره دَ رددناک عذابونو وعید هوم شته دے..... تاسو ئې ملاحظه کړے چه ارشاد فرمائیلے شوے دے: تاسو دَ رسول پکار (راغوښتل) داسې مه ګڼړے لکه چي یوبل له صدا ورکوے، الله پاک دَ هغه خلقو علم لري چي کوم په پټه باندے په تاسو ترمینزه

نه وتختي، نو چي کوم خلق دَ الله دَ حکم مخالفت کوي، هغه ته په کاردي چه ویریږي چي په دوئ په چرته څه آفت نازل کړے شي یا په دَ پاسه څه دردناک عذاب راشي- (۳۴)

تاسو خپله اندازه ولګوئے چي دَ کوم یو مبارک محفل دَ ادب دا مقام وي په دي کښے به دَ رونق محفل یعني خوږ پیغمبر علیه السلام دَ ادب به څه مقام وي؟........... اصحابِ کرامو علیهم الرضوان به دَ خوږ پیغمبر علیه السلام په محفل پاک کښے داسے کیناستل چي سر به اے ټیټ وو په خبره خبره باندے به اے وئیل...... یارسول الله!ځما مورپلار په تاسو قربان شه ...... هر سوال په ځواب کښے به ئ یوه خبره کوله...... (الله او دَ هغے خوږ رسول دَ ټولو نه زیات علم ....لري)

حوالے؛. (۲۲) سوره شوري: ۵۲.... (۳۴) سوره النور: ۶۳. ترجمه مولوي اشرف علي تهانوي

بلا شک و شبه چي خوږ پیغمبر علیه السلام له هغے پروردګار دَ غیب علم ورکړے وو، او دا حقیقت مونږ په ۳ جهتونو باندے پوهیدے شو

اول؛ تاسو لره براه راست (علم غیب) عطا کیدل

دویم؛ تاسو ته دَ قرآن کریم عطا کیدل چي کوم دَ (علم غیب) خزانه ده

دریم: تاسو بطور شاهد راستول او شاهد (هغه حاضر او ناظر ته وئیلے کیږي) چي کوم دَ واقعے په وخت خپله موجود هوم وي او واقعه ائ په خپلو سترګو کتلي وي یعني هغے ته دَ هرخبرے عین الیقین او حق الیقین حاصل وي

اول جهت؛ كه دَ خوږ پيغمبر عليه السلام (علم غيب) ته په اولنمے جهت باندے وكاندے نو دا آيتونه ستاسو دَ دغے علم غيب تصديق كوؤنكې دې

۱.دا خبرے منجمله دَ غيب خبرودې چي مونږ راليكو ستا اړخته (۳۵)
۲. دا خبرے دې دَ غيب چي مونږ درليكو تاسو لره. (۳۶)
۳. او دوئې دَ غيب خودو كښے بخيل نه دے. (۳۷)

دويم: كه دَ خوږ پيغمبر عليه السلام دَ علم غيب ترحقله په دوئيم جهت نه نظر وكړے شې نو دا آيتونه زمونږ ستركے وازے كولو له پاره كافې دې چي

۱.مونږ په تاسو قرآن نازل كړے دے چي كوم دَ هره خبرو بيان كوؤنكے دے. (۳۸)
۲.دا قرآن، څه چوړ كړے خبره نه ده بلكه موافق ده. دَ هغه كلام سره چي كوم دې نه وړاندے دے او بيان دَ هرڅهز.(۳۹)
۳.مونږ په دے كتاب كښے هيس پرينخوه. (۴۰)
۴.بے شک تالره دَ الله دَ مخښه يو نور راغلو او روښان كتاب. (۴۱)
۵.او هيس شئ نه دے چي كوم غائب وې په آسمان او په زمكه كښے خو موجود دے، واضحه كتاب كښے. (۴۲)
۶.او كمه دانه دَ زمكے په تيرو كښے او نه چرے شين څيز او نه اوچ څيز شته خو هغه ټول په دې كتابِ مبين كښې شته. (۴۳)

حوالے؛ (۳۵) سوره هود: ۴۹ (ترجمه اردو مولوې محمود الحسن) (۳۶) سوره يوسف: ۱۰۲ (ايضاً) (۳۷) سوره تكوير: ۲۴ (۳۸) سوره نځل: ۸۹ ترجمه اردو مولوې اشرف علې. (۳۹) سوره يوسف: ۱۱۱ ترجمه محمود الحسن. (۴۰) سوره انعام: ترجمه حضرت امام احمد رضا محدث. (۴۱) سوره مائده: ۱۵ ايضاً (۴۲)

سوره نمل: ۷۵ ترجمه اردو مولوې محمود الحسن. (۴۳) سوره انعام: ۵۹: ترجمه محمود الحسن

تاسو ملاحظه کړل، په دې آیاتو کښې اول (کتاب مبين) قرآن حکيم ذکر فرمائيلے شوے دے بيا دا فرمائيلي شوې دې چي په دی روښانه کتاب کښے څه څه موجود دې...... غور وکړے، دا روښان کتاب چي په کښې دَ زمکو او دَ اسمانونو هر څيز بيان شته، چه په کوم مقدس پاک ذات باندے نازل کړے شوے دے دَ هغے دَ علم او دَ دانش به څه عالم وې؟

دريم (۳): که دَ خوږ پيغمبر عليه السلام ته الله ترمخے عطا کړے شوې علم غيب ته په دريم جهت وګورئ نو دا آيتونه مونږ په يو نوے جهان ته ورسئې چي چرته مونږ په حيرانتيا دَ يو بل خولے ګورو خو چي څه وئيلي شوې دې په هغے باندے په مکمل دل وجان سره ايمان لرو، او که ايمان په نه راؤړے نو دَ هر څيز نه به پاتے وسئے په دې آيتونو باندے ښه غور وکړے او دَ علم مصطفے عليه السلام په وسعتونو او ګهرائے اندازه لګؤلو کوشش وکړے، الله اکبر! مونږ به څه اندازه ولګؤ، دَ هغه رب کريم ته به مکمل پته وې چي هغے خپل خوږ پيغمبر عليه السلام له سانه علم عطا کړے دے: نو الله پاک ارشاد فرمائيلې:

۱؛ مونږ تاسو نازل کړے ئے ګواهئ ورکؤنکے، او بشارت ورکؤنکے اور يرؤونکے. (۴۴)

۲. او تاسو به په دے خلقو باندے ګواهي ورکؤنکے حاضر کوؤ. (۴۵)

۳. بےشکَ چي مونږ په تاسو يو رسول داستولی چی کوم به تاسو ګواهی ورکوې. (۴۶)

۴-او چي په کومه ورځ مونږ هر هر امت نه به يو ګواه دَ هغو ترمنزه نه به راولو او په هغوئ په مقابل کښے به راؤردؤ اور بيا په دې خلقو به تاسو(عليه السلام) ګواه جوړوؤ- (۴۷)

دے آياتِ کريمه نه معلوميږې چي دَ قيامت دَ ورځے به زمونږ خوږ پيغمبر عليه السلام نه صرف خپل امت بلکه نورو انبيائے کرامو دَ امتونو دَ اعمالو به هوم ګواه وې او ګواهي تش هغه نفر ورکوے شې چي دَ چا مخکښې هغه کار شوے وې او دَ دے آيتونو نه دا هوم معلومه شوه چي نبې عليه السلام هرڅه ګورې ملاحظه فرمائې او هغوئ زمونږ په احوال و اعمال نه بے خبر نه دے. په دے پس منظر کښے يو دا حديث هوم ووائېې چي؛

۱-په يو حديث کښے فرمائيلې: چه څنګه څه مخکے ګورم هغه شان روستو هوم په کتو قادر يم- (۴۸)

حوالے؛ (۴۴) سوره فتح: ۸ ترجمه اشرف علې (۴۵) سوره نسا: ۴۱ ، (۴۶) سوره مزمل : ۱۵ (۴۷) سوره نحل: ۸۹ (۴۸) مسلم شريف: ج ۲ ص ۱۱۶

۲؛ دوئيم حديث کښے راغلې دې چه دَ مدينے شريف نه مکه معظمه ته تلو په وخت وادئ ازرق کښے حضرت موسیٰ عليه السلام وکتلو چي په اوچته اۓ تلبيه وئيله بيا په وادئ هرشیٰ کښې حضرت يونس عليه السلام په سور اوخئ او په اونې جبه ناست وکتو- (۴۹)

۳؛ حديث پاک نه معلوم شولو چي تاسو عليه السلام دَ جنت او دَ دوزخ مشاهده فرمائيے- (۵۰)

۴؛ څلورم حدیث نه پته لګي چه تاسو علیه السلام ته جنت او دوزخ ته ورغلے هر نفر نوم په نوم معلوم دے۔ (۵۱)

۵؛ پینځم حدیث نه معلومیږي چه کله یو نفر په پاک محفل کښے تاسو علیه السلام نه دا خبره دریافته کړه چي هغه به جنت ته ورځي او که دوزخ ته نو تاسو علیه السلام ورله جواب ورکوي چه دوزخ ته به ځے۔ (۵۲)

۶؛ حدیث کښے خوږ پیغمبر علیه السلام فرمائي: څما ټول امت خپل ټول نیک او بد اعمالو سره څما ملاحظے له راپیښ کړے شو۔ (۵۳)

۷؛ په دي حدیث کښے فرمائیلي: دَ شپے څما ټول امت څما ته په دي حجره کښے راپیښکړے شو، تردے پورے چي بےشکه څه په دوئي کښ هر کَس دَ هغو نه زیات پیجنم لکه چي تاسو کښے څوک خپل کسان پیجني۔ (۵۴)

قرآن کریم کښے په یو ځائے کښے ارشاد شوے دے؛ ........ایا هغه نفر سره علمِ غیب شته چي هغو ئے ګوري؟ (۵۵)........ دي آیت نه معلومیږي چي علم غیب هوم هغے سره وي چي کوم ائے ګوریهم..... یعني چي په کتو ائ قادر وي....... په قرآن کریم کښے په متعدد مقاماتو باندے دَ خوږ پیغمبر علیه السلام دا شانِ دید بیان کړے شوے دے (۵۶)......... ریختیا خبره خو دا ده چي چا خپله الله پاک ولیدلو نو بیا هغے نه نور کوم یو څیز به پټ پاتي وي هر څه خو ظاهره شول ورته لکه خوږ پیغمبر علیه السلام خپله فرمائیلي دي: ما خپل رب عزوجل ولیدو، هغه خپل دستَ قدرت څما په ملا کیخؤ او څه دَ هغے یخوالے په خپله سینه کښے محسوس کوم، او په هوم هغه وخت په ما هرڅیز روښانَ شو او ما هرشے پهچان وکړو۔ (۵۷)

حوالے؛ (۴۹) ابن ماجه، پ ۲۰۸/۲۰ (۵۰) مسلم شريف : ج ۲ پ ۱۸۰ (۵۱) مشکوۀ شريف؛ کتاب الايمان في القدر فصل ثاني، پ ۱۹ (۵۲) بخاری شريف: ج ۳ پ ۸۵۵ (۵۳) مسلم شريف ج ۱ پ ۲۰۷ (ب) ابناء المصطفٰے ، پ ۹، بحواله مسند احمد، و سنن ابن ماجہ (۵۴) انباء المصطفٰے پ ۹ بحواله طبرانی۔ (۵۵) سورة نجم: ۳۵ (۵۶) سوره مجادله ۷، سوره ابراہيم: ۱۹، سوره بقره: ۲۵۸/۲۴۳ (۵۷) ترمذی شريف بروايت معاذ بن جبل رضی الله عنه (ب) مشکوۀ ، کراچی پ ۷۲

تر وسه پورے خو دَ خوږ پيغمبر عليه السلام دَ علم دَ وسعتونو او دَ ستاسو کتَلو ترمخه خبرے روانی وے، خو چي کوم (علم غيب) تاسو لره عطا کړے شوے دے او چي کوم تاسو ته خودے شوے دے ايا تاسو دَ دې عظيم نعمت خيرات په خپلو غلامانو کښے هوم تقسيم فرمائيلے او که نه؟........ دَ ډير احاديثو نه معلوميږې چي تاسو نورو ته هوم عطا کړے ده او خه ډيره اے عطا فرمائيلے ده او ولے به نه فرمائې چي الله پاک خو تاسو نازل کړئ هوم عطا کوؤلو له پاره ئے، مشهور صحابی حضرت ابوذر غفاری رضی الله عنه فرمائې:

۱؛ خوږ پيغمبر عليه السلام مونږ په دے حال کښے پريخوؤ چي په هوا کښے به کومه يوه مرغے پروهلو والا نِشته داسې چي دہ چا علم خوږ پيغمبر عليه السلام زمونږ مخکښی بيان نه وې فرمائيلی۔ (۵۸)

حضرت حذيفه رضی الله عنه فرمائی:

۲؛ رسول الله صلی الله عليه وسلم يو ورځ په مونږ کښی ولاړ دَ هغه وخت نه ، قيامته پورے چي څه به تيريږې هغه هرڅه اے بيان کړ، هيس څيز يم پري نه خول،

چي دَ چا یاد کښې څه پاتې شول، پاتې شول او چي دَ چا نه هیر شو، هیر شول۔ (۵۹)

په یو بل حدیث کښې راغلي چه:

۳؛ نه دے پریخے رسول الله علیه السلام څوک فتنه چلوؤنکے په دنیا کښې تردَ دنیا خاتمې پورے خو دا چي مونږ ته دَ هغې نوم، هغه دَ پلار نامه او دَ قبیلے نوم هوم وخودَلو۔ (۶۰)

۴؛ ۱۷ رمضان المبارک سنه ۲ هجرئ/ بمطابق ۶۲۴ عیسوئ کښې غزوه بدر راپیښ شوے وو، دَ جهاد شروع کیدو نه وړاندے په میدان دَ جنگ کښې خپل دستِ مبارک ځاے په ځاے به ایښوستو او دَ دشمنانِ اسلام دَ مقتولین نومونو نشاندهي به اے فرمائیله چي پلانکے به دلته قتل کیږي پلانکے به دلته........چي کله جهاد ختم شو نو چي کوم یو نفر له پاره تاسو خپل دستِ مبارک سره چي دَ کوم ځائ نښه خودلے وه هغه نفر هوم هلته پروت ملاؤ شولو۔ نه یو انچ مخکښې او نه روستو۔ (۶۱)

حوالې؛. (۵۸) انباء المصطفےٰ پ ۸ بحوالہ مسند احمد و طبقات ابن سعد (۵۹) انباءُ المصطفٰے پ ۷، بحوالہ بخاری شریف و مسند احمد (۶۰) مشکوٰۃ شریف باب الفتن (۶۱) مسلم شریف ج ۲ کتاب الجهاد

بخاریٔ شریف کښې یو طویل حدیث بیان شوے دے چي کوم زمونږ سترګے کوهلاؤلو له کافی دے.... حضرت انس رضیٔ الله عنه فرمائي؛

۵؛ نمر کوزيدو نه پس له نبيِ عليه السلام باهر تشريف راوړو، بيا اے دَ ماسپښين (ظهر) مونز ادا کړو، چه کله سلام اے وګرزولو نو تاسو په منبر باندے تشريف فرما شوئے او قيامت ذکر اے بيان کړو، نيز دَ هغه ستر او غټ کارونو ترحقله اے بيان وکړو چه کوم به دَ هغے نه وړاندے راپيښيږي.... بيا اے وفرمائيل؛ که څوک ما نه دَ کوم يو څيز په حقله تپوس کوؤل غواړي نو تپوس دے وکړي چي دَ خدایَ قسم تاسو به ما نه تپوس نه کوے دَ څه څيز خو چي څه تاسو ته هغے متعلق ووايم چي تر کمے څه په دے ځاے يم............ حضرت انس رضیَ الله عنه بيان دے چي خلق زار وقطار په جړيدو شول او رسول الله عليه السلام به بار بار هوم دا وفرمائيل چي (ما نه تپوس پختنه وکړے! ما نه تپوس وکړے . ۶۲

په دې حديث پاک باندے دا آيتِ کريمه ګواه ده (او دا دَ غيب خؤدَلو کښے بخيل نه دے.) (۶۳) يعنې چه دَ څه تپوس کړے ، هغه په بارے کښے به درته وئيلے کيږي....... چي څه غواړے، هغه به ملاويږي...... او دَ خوږ پيغمبر عليه السلام په دَ پاسه دا قسم خوړل چي څه پختنه کړے هغه به درته بيان کړے شي .... او بيا بار بار ستاسو فرماييل چې ما نه تپوس وکړے.......... په دې حقيقت باندے ګواه دے چي نبيِ عليه السلام ته الله په فضل او په کرم باندے علم غيب عطا کړے شوے وو.... يو عرب عالم شيخ احمد بن محمد بن الصديق الغماري الحسنیَ يو فاضلانه کتاب لوستونکے کړے دے چي دَ څه عنوان دے (مطابقته الاختراعات العصريه لما اخبر به سيد البريته) (۶۴) .....مصنف په دے کتاب کښے هغه غيبي خبرے جمع کړې دې چي کوم خوږ پيغمبر عليه السلام ارشاد فرمائيلي وو... په وئيلو سره حيرت نور هوم زيات شي چي داسے معلوميږي چیَ نبیَ عليه السلام ماضي و مستقبل نه داسے خبر وو لکه چي سپينه شيشه وي، او ولے به نه وي چه خپله تاسو عليه السلام دا ارشادِ پاک هوم دے چیَ؛ ما لره دَ زمکو دَ خزانو کنجے (چابيانے) راوړے شوے او ځما په لاس کيښنوستلي شول۔ (۶۵)

حوالے؛ (۶۲) بخارئ شريف؛ کتاب الاعتصام ج ۳ پ ۸۵۵ (۶۳) سورۂ تکوير؛ ۲۴ ترجمه محمود الحسن ديوبندئ (۶۴) مفتئ احمد مياں برکاتئ دَ (اسلام اور عصري ايجادات) په نوم دَ دے کتاب اردو ترجمه کړے ده چي کمه ۱۹۸۰ کښے په لاهور کښے شائع شوے ده. (۶۵) (۱) بخارئ شريف پ ۸۴۸ (ب) مسلم شريف مع فتح الملهم، کراچئ ج ۲، پ ۱۱۶

خزانے مالک هوم هغه وې چي چا سره دَ خزانے چابيانۍ وې خو دَ دے نه دا مطلب هرگز نه دے چي معاذ الله، الله پاک بے اختيار شو، بلکه دے نه خو دَ الله پاک نوراختيار او قدرت اظهار هوم وشو او ظاهر شولو چي الله تعالي خپل په کرم باندے خپل خوږ پيغمبر سومره عطا کړے دے، دا هوم هغه کنجے يا چابيانے دې چه دَ څه نه دَ آياتِ قرآنې معنے خزانے کوهلاويږې........ قرآن شريف خو مونږ هم گورو، مونږه اے وايو همَ خودَ خوږ پيغمبر عليه السلام سترگو او چشمانِ مبارک چه په کښے څه گورى هغه مونږ نه شو کتئے.... تش يو مثال رامخکے کؤم. په قرآن مجيد کښے يو آيت دے چي؛

او هغو له پاره تيار لره هغه (قوت) چي کم ته لرے (۶۵) (يعنى دشمنانِ اسلام له پاره)

دلته لفظ (قوت) په معنو کښے بظاهر څه خاص راز نه معلوميږې خو چي کله دَ دے راز نه خوږ پيغمبر عليه السلام پرده اوچتَوې نو انسانى عقل ورته حيران پاتے شې، دَ لفظ (قوت) په تفسير کښے تاسو فرمائيے: خبردار، دا قوت "رمى' دے! خبردار دا قوت "رمى" دے خبردار دا قوت رمې دے۔ (۶۶)

عربئ کښے (رمي) معنے وي (ورغورزول) چنانچه په حج کښے جمرات باندے چي کوم کانړي وهلے کيږي هغو ته (رمی) وئيلے کيږي.........په دے حديثِ پاک کښے خوږ پيغمبر عليه السلام هغه تمام هتيارونو ذکر فرمائيلے دے چي کوم نن زمونږ مخښکے دي او دَ قوت توازن دَ هغه ملکونو په حق کښے وي چي چا سره دا هتيار وي. خصوصاً ايټم بم، راکټ، ميزائل وغيره...... دا ټول اوزارونه يا هتيارونه ورغورذيدے کيږي يا ورشړلے کيږي اور دَ (قوت) راز جوړ شوي دي، نو دَ احاديثو مطالعه که اوکړے نو تاسو ته به دَ غيبي خبرو يو سيلاب ښکاره شي

بره چي څه عرض وکړے شولو، دَ دے په رنړا کښے مونږ ته (علم غيب) په بارے کښے دَ دے حقائقو علم کيږي، دا حقائق په ډير ښه طريقے ذهن نشين کړئ؛

۱؛ اوله خبره دا معلومه شوه چه (علم غيب) يو حقيقت دے

حوالے؛ (۶۶) سوره انفال: ۶۰ (۶۷) مسلم شريف ج ۲ پ ۱۴۳

۲؛ دوئمه خبره دا معلومه شوه چي (علم غيب) مکمل تش الله له پاره دے
۳؛ دا چه دا معلومه شوه چي الله پاک خپل محبوبانو لره (علم غيب) عطا کوي
۴؛ چي الله پاک خپل برگزيده پيغمبرانو عليهم السلام له (علم غيب) ورکړے وو
۵؛ چي الله پاک زمونږ خوږ پيغمبر عليه السلام له هوم علم غيب عطا کړے وو
۶؛ خوږ او عظيم پيغمبر عليه السلام دا يو (علم غيب) صحابه کرامو رضوان الله عليهم اجمعين ته وخوَدو او هغوئ نه مونږ ته معلوم شو

دے وخت دنيائے اسلام دَ عالمیِ سازشونو په زد کښے دے. دَ اسلام دَ دښمنانو هدف دَ نبي عليه السلام ذاتِ اقدس دے، چي کوم مرکزِ قلب و نظر دےچي دَ څه

نه چوندون ملاويږي. دے سازش ترمخه مسلمانانِ عالم دَ هغه هرسوچ او هغه هرعمل نه دَ لرے کيدو منع کولو چي دَ څه نه دماغ او زړونو کښې دَ نبي عليه السلام مينه او محبت راپيدا کيږي کوشش روان دے. دَ دے سازشونو نه ځان محفوظ ساتلو کوشش کوئ او دا يقين لرئ چي الله پاک خپل په فضل او په کرم سره خوږ پيغمبر عليه السلام له هرڅه عطا فرمائيلي دي بے شک

لوح بھی توُ، قلم بھی توُ، تیرا وجود الکتاب
گنبد آبگینہ رنگ تیرے وجود میں حباب ۔ حضرت اقبال رحمتہ اللہ علیہ

دِ اہلسنت وجماعت ۱۳۰۰ سوه کاله تاريخ او دَ اسلافو ايمان او عقائد په دی گواه دي چي اهلسنت وجماعت دا ايمان لري چه الله پاک خپل خوږ پيغمبر عليه السلام ته علم غيب ورکړے دے او دا ده هغے فضل او رحمت دے چي دَ نورو ټول سابقه انبيائے کرامو نه سيوا دے چي څنګه مونږ دَ قرآني آيتونو نه مفصل بيان وکړو لاندے اوس مونږ يو څو واړه واړه مثالونه درکوؤ چي کوم دَ احاديث دَ مجموعو نه مونږ ته معلوميږي چی خوږ پيغمبر عليه السلام دَ څه څه په باره کښے څه څه بيان فرمائيلے دے او دا ټول دَ غيب هغه خبرونه دي چه په کښے ډير نن مونږ ته معلوم دي خو بيان اے ۱۳۰۰ سوه کاله وړاندے شوے دے

### مذهبي خبرے

۱؛ مساجد نه به لارے جوړے شي
۲؛ دَ قاريانو به کثرت وي، او لکه دَ حشرات الارض په شانے به ډير وي
۳؛ علما او فقهاؤ به کمے وي
۴؛ شرير خلق به فقهاء وي

۵؛ متقی مفتیې به داسې غائب وې لکه پیر انسان په لټولو لټولو به نرې شې خو بیا به هوم ورته نه ملاویږې

۶؛ زړهاؤ به مونزونه کوې خو یو به هوم پکښې مسلمان نه وې

۷؛ قرآن کریم به عار ګڼړلې کیږې

۸؛ اسلام کار به هغه خلق کوې چه کوم به خپله مسلمان نه وې. (چنانچه مونږ ګورو چي مغربي اقوام قرآن و حدیث، تاریخ و سیر وغیره باندې ډیر کارونه کوې او داسې خلقه دَ دین کار کښې اخته دئ چي کوم بظاهر بې دینه معلومیږې).

## اخلاقي خبرې

۱؛ تش جان پهچان یعنې پیجندونکو سره به سلام علیک کیږې

۲؛ بې‌حیائې او بدزبانې یعني بدګوئې به عام وې

۳؛ بد ګاونډیان به وې

۴؛ رشته دارې به ختمې شې

۵؛ خزې به باغیانې وې او سړې به دَ نیکې لارې پریګدې

۶؛ دَ وړوکو به خه خیال کیږې خو مشران به نظرانداره کړې شې. (لکه په ترقي یافته ممالک کښې زاړه بډاګان مور او پلار دَ کورونو نه اویستلې شې ، حکومت دَ هغو خبرګیرې کوې، خو خپل اولاد ئې تپوس نه کوې)

۷؛ زناکارې نه به شرم پاتې نه شې

۸؛ اوباش خلقه به لاره روان خزې سره چیړ چاړ کوې، او چیړ والا نفر به چي خاندې نو ورسره به اې ملګرې هوم خاندې

۹؛ زنانه به مشران او زبرګانو بې عزته کوې، مغرب او مشرق کښې دا وبا عام ده

۱۰؛ اصلي ملګرې او مالِ حلال به غائب شې

## تعلیمې او تدریسې خبرې

۱؛ علم به عام وي، سړے، خزه، ماشوم، غلام، آزاد هرڅوک به وائي

۲؛ مخلوط نظام تعلیم به وي بغیر دَ ستر او پردے

## تهذیبی او معاشرتي خبرے

۱؛ زنانه به سره دَ جامو (پیزارو) عریان (بربنډ) وي

۲؛ په سرونو به کوهان نما څیز (یعنیِ هیټ، دا قسم ټوپئ) به وي

۳؛ خزے به په اکړبازے په نخرو ګرزي

۴؛ نارینه به دَ زناناؤ او زنانه به دَ نارینناؤ مشابهت کوي

۵؛ په سَرونو به سندرے غګیږي

۶؛ خلق به په بازارونو کنبی داسے ګرزي چه دَ هغوئ پتون به ښکاره کیږي ۰یعني خزے به اسکرټونه اچوي او سړے تنګ پتلونونه وغیره

۷؛ ګیرے به صفا کړے شي (یعنیِ شیو)

۸؛ خکلے څرمنو څپلے به اچولي کیږي او خه به اے چمکاؤئَ

۹؛ نارینه به زینت کوي

۱۰؛ قسم قسم خوراکونه به خوړلے کیږي، قسم قسم شربتونه به سکلے کیږي، وضع وضع جامے به اغوستلے کیږي او خؤګو چړو په شانے خبرے به وي، دا به دَ امت شریر خلق وي

## سائنسي او تکنیکي خبرے

۱؛ دَ کجادو په شانَ سورلے به وي (یعنیِ موټر، بس وغیره)

۲؛ زمانے به دَ یوے بلے نه نزدے شي او زمکه به راغونډه شي ۰(یعنیِ جدید قسم زرائع ابلاغ، تار، ټیلیفون، فیکس، انټرنیټ وغیره او ذرائع نقل و حمل، موټرے، ریل ګاړي، جهازونه وغیره به ایجاد شي، چي دَ څه په وجه مکان او زمان فاصلے رالنډے شوے).

۳؛کال به میاشت شي، میاشت به جمعه شيَ جمعه به یوه ورځ وي او ورځ به یو ساعت په شان تیریګي

۴؛ قلم به ظاهر شي (په دې ارشاد کښې، فونټین پینونه، پنسلے، ټائپ رائټر، پرنټنګ پریس، او کمپیوټر ټول راځي)

۵؛ څپلے او دَ هغے تسمے به خبرے کوي او هغه هرڅه به ووائي چه څه پس له هغے په کور کښے روان وو (یعني، ټیپ ریکاډر، جدید آلاتِ جاسوسي، کیمرے، دَ ماشومانو څپلو کښی لګیدلې ایلیکټرانک آلات وغیره).

۶؛ دَ یو ښار تاجر به بل سره مشورے کوي (دا دَ ټیلیفون طرف ته واضحه اشاره ده).

## تجارتی او اقتصادی خبرے

۱؛ تجارت به عام وي

۲؛ دَ دولت به ریل پیل وي (لکه حرام)

۳؛ نارینه او زنانه به دواړه تجارت کوي

۴؛ سود نه به څوک هَم نه پاتے کیږي او چي کوم تینه بچ هوم وي هغه ته به هوم دَ سود غبار ضرور رسي

۵؛ فرات نه به دَ سرو زرو خزانه ظاهره شي (پټرول ته تورسره ویئیلے کیږي او دَ دے هوم بے شمیره ذخیرے په دے علاقے کښے راوتي دي)

۶؛ فرات نه به دَسرو غر راوزي نو خلق به چي کله هغے په بارے کښے واؤري نو هلته به ورځي، چي دَ چا په قبضه کښے به وي هغه به وائ که مونږ نور خلقو له دَ دے اجازت ورکړو نو هغوئ به ټول یوسي، په دے به خلق قتل کیږي

۷؛ ډیر کانونه (چه چرته سره زر وجواهر رؤځي) به آښکاره شي خو مالکان به اے تش کمینه خلق وي

سیاسې او ملکې خبرے

۱؛ مسلمان به مسلمان قتل کوې او دَ بتونو پجاریان به نظر اندازه کړې (مونږ دَ دے غیبي خبر واضحه مثال کښې په ماضي کښې دَ فسادَ بالاکوټ او په نن سبا کښے فسادَ تي تي پي په آسانه کتلے شو، چې بنګله دیش جوړیدلو نو هغے پسے هوم دا خلق وو چي نن دَ هندوانو نه پیسه اخلې او جهاد په مسلمان کوې

۲؛ بعض قبیلے به مشرکین سره ملاؤ شې او په بعض قبیلو کښے به دَ بتانو عبادت شروع شې

۳؛ دا خلق به داسے دَ اسلام نه تیر شې لکه چي تیر دَ خپلے نښے نه . (پاکستان او یا په نور اسلامي ملکونو کښے چي کوم خلق قوم پرستئ، یا صوبه پرستئ، یا آثار پرستئ دعوتونه ورکوې هغه دَ اسلام نه هوم داسے لرې دې لکه چي تیردَ نشانے نه خطا درومې)

۴؛ جهاد په نوم به تش شوروغوغا وې ( چنانچے مونږ ګورو چه عالم اسلام اهم معاملات، اجتجانو، هړتالونو، قراردادونو نذر شې، چي کوم اسرائیل کښے یا کشمیر کښے جهاد په کار دے هغه خو شتنه دے نه، او هغے په ځائے دا نام نهاد مسلمانان نور مسلمانانو باندے کفر شرک بدعت فتوے لګوې او خپل مسلمانان وجنې)

۵؛ خائن نه امین جوړلے کیږې

۶؛ حاکم به بدعمله او بدکردار اشخاص وې (مثال موجوده سیاسي حکومتونه ، اشرافیه، لکه مولانا ډیزل صاحب).

طبی ومعالجاتی خبرے

۱؛ فحش کارے په وجه به نوے نوے بیماریانے راپیداکیږې

۲؛ خلق به اجانک مړ کیږې

۳؛ فالج او حرکت قلب وردیدل به یوه عام خبره شې

دا یو مختصر تفصیل وو دَ هغو غیبي خبرو چي کوم الله پاک خپل خوږ پیغمبر علیه السلام له ورکړي وو او چي کوم هغه خپل دَ خوږ اصحابو په ذریعه خپل امت ته دَ حدیثونو نه ورکړي دي

## دَ غیب تعریف او دۀ غیب اقسام

غیب هغه پټ ځیز ته وئیلے کیږي چه کوم انسان نه خو په خپل سترګو، یا دیګر حواس نه محسوس کوے شي او نه بلا دلیل بداهته په عقل کښے راتلے شي لهذا پاکستان کښې وسیدونکي له پاره جاپان والا غیب نه دے، چي هغه یا خو په سترګو کتے شي یا آوریدے شي یعنی دا دَ حواس په ذریعه علم شو. دغه شانے دَ خوراکونو لذات، دَ هغے خوشبوئے وغیره په غیب کښے نه شي راتلے چي دا شئینه اګرچه سترګو نه پټ دي خو په نور دیګر حواسونو نه معلومیدے شي، البه خاپیرے، فریښتے، ملائکه، جنت او دوزخ مونږ له پاره دي وخت غیب دي چي هغه خو نه په حواس په ذریعه معلومیږي او نه بلادلیل عقل سره

غیب دَ دوه قسمونو وي، یو خو هغه چي په دَ پاسه څه دلیل قائم کیدے شي یعني دَ دلائل نه معلوم کیدے شي او دوئیم هغه چي دَ څه دلیل نه هوم نه معلومیدے شي . دَ اولنمي غیب مثال لکه جنت او دوزخ او دَ خدائے پاک ذات او صفات چي دَ عالم ځیزونو او دَ قرآني آیتونو نه دَ هغوئ پته لګیدے شي. دوئیم غیب مثال لکه څنګه چي دَ قیامت علم چي کله به وي، انسان به کله مري، او دَ خزے په خیټه کښے ماشوم دے او که ماشومه، بدبخت دے او که نیک بخت جي دا دلائل هوم نه شي معلومه وے۔

دا دوئیم غیب ته **مفاتح الغیب** وئیلے کیږي او دې په حقله پروردګارِ عالم فرمائیلي (فلا یظهر علي غیبه احدا الا من ارتضی من رسول . پاره ۲۹ سوره ۷۲ آیت ۲۷/۲۶)
، تفسیر بیضاوي یومنون بالغیب ماتحت لیکې چې؛

والمراد به الخفي الذي لایدرکه الحس ولا تقتضیه بداهته العقل
ترجمه؛ غیب نه مراد هغهٔ پټ څیز دے چې نه اے حواس باندے معلومولے شی او نه بداهتهً عقل اے خوښ کړي. (انوار التنزیل ج ۲ پ ۲۸ ط، مصطفےالبابي مصر)

تفسیر کبیر کښې سوره بقره په شروع کښے هوم دَ دې آیت په ماتحت بیان دے؛

قول جمهور المفسرین ان الغیب هو الذی یکون غائباً عن الحاسته ثم هذا ینقسم الي ما علیه دلیل والي ما لا دلیل علیه
ترجمه؛ عام مفسرین دا قول لري چې غیب هغه دے چې کوم دَ حوااس نه پټ دے. بیا غیب دَ دوه (۲) قسمونو دے یو چې په دَ پاسه دلیل وي، او دوئیم هغه چې بے دلیلَ وي (تفسیر الکبیر ج ۲ ص ۲۷ ط. دارالفکر بیروت)

تفسیر روح البیان کښے په شروع سوره بقره یومنون بالغیب تحت لیکلې دي

وهو ما غاب عن الحس والعقل غیبتہ کاملۃ بحیث لا یدرک بواحد منها ابتداء بطریق البداہتہ وهو قسمان قسم لادلیل علیہ وهو الذی ارید بقولہ عنده مفاتح الغیب و قسم نصب علیہ دلیل کا الصانع وصفاتہ وهو المراد
ترجمه؛ غیب هغه دے چه کوم دَ حواس او عقل نه پورا پورا پټ (غائب) وي او په داسے چې په هیڅ ذریعے نه هوم ابتدا کښې واضح معلومیدے نه شي.دَ غیب دوه اقسامه دي یو په کښے هغه قِسم دے چه دَ پاسه په هیڅ دلیل نه وي او هوم هغه دَ

دے آیت نه مراد دے چي الله تعالي سره دَ غيب كنجيان(چابے) دي. دوئيم قسم هغه دے چه په دَ پاسه دليل قائم وي لكه دَ الله پاک او دَ هغه صفات. هوم هغه په دے ځائے مراد دے. (تفسير روح البيان ج ۱ پ ۳۲ ط مكتبته الاسلاميۀ كوئټه)

رنګ دَ سترګو نه كتلے كيدے شي، بوئي دَ پوزے نه محسوس كيدے شي او لذت يعنی خوند دَ ژبے نه او آواز دَ غوږ نه محسوس كيدلے كيږي، رنګت، ژبه او غوګ له پاره غيب دے، او بوئي سترګے له پاره غيب، كه څوک دَ الله بنده بوئي او لذت ته دَ هغه په شكلونو كښے په سترګے هوم وګوري هغه به وم علم غيب اضافي دے لكه څنګه چي اعمال به په قيامت كښے په مختلف شكلونو كښے ښكاره كيږي. كه څوک هغه شكلونه په دي جهان كښے هوم كتے شي نو دا به علم غيب وي، حضرت پيرانِ پير غوث پاک صاحب رحمته الله عليه فرمائي

ومنها شهوراً و دهور . تمرو تنقضي الا اتالي
او كمه مياشت او كمه زمانه عالم كښے نه تيرے دے شي خو مونږ له په حاضرے او په اجازت سره تيريدے شي

هم دا شانے چي هر څيز چي في الحال موجود نه دے يا ډير لرے دے يا په تيرو په وجه نه ښكاريدلے كيږي هغه هَم غيب ګڼړلے كيږي او دَ هغے علم لرل علم غيب دے. لكه څنګه چي خوږ پيغمبر عليه السلام دَ آئينده پيدا كيدونكي شئينه ملاځظه كړل يا حضرت عمر رضی الله عنه په نهاوند كښے حضرت ساريه رضی الله عنه په مدينے شريف كښے ناست وليدو او هغو ته اے (دَ مدينے نه) نهاوند كښے خپل آواز ورَسولو.په دي شانے كه څوک پيښور كښے ناست دَ مكه مدينه يا ديګر لرے ملكونو ته خپل دَ لاس (مثل كفِ دست) كتلو باندے قادر وي دا ټول به هوم په غيب كښي داخل وي

بذریعه آلات که څه پټ شئے معلومیدے شي او معلوم کړے شي نو هغه به دَ علم غیب په دائره کښے نه راځي. مثلاً که په سائنسي آله باندے دا معلومه شوه چې زنانه په ګیډه ماشوم دے، یا که په ټیلیفون یا ریډیو انټرنیټ دَ لرے آواز اؤریدل ، نو دې ته به علم غیب نه وئیلے کیږي. ځکه چه غیب په تعریف کښې عرض وکړے شولو چي کوم په حواس نه شي معلومیدے. او ټیلیفون یا ریډیو نه چي کوم آواز راؤځي، هغه آواز حواسو سره په معلومیدلو قابل ده، هغه آلے نه چي په څه په خیټه کښے دَ ماشوم حال معلوم شو. نو دا ده غیب علم نه دے، او چي آلے ظاهره کړه نو بیا غیب پاتے چرته شو؟

خلاصه اے دا شوه چي که چرے څه آلات پټ شئینه خاؤدل ظاهرکوي، نو ظاهرکیدو نه پس له که مونږ معلومه کړه نو دا به علم غیب نه وي

اوس به مونږ دَ ائمه کرامو ، محدثینو، مفسرینو، او دَ اولیائے کرامو په دې ترحقله ارشادات نقل کوؤ ورسره ورسره دَ لغات العرب ماهرین  مستند ائمته اللغات نه به دَ غیب په عربئ کښے معنے بیانولو کوشش کوؤ

دَ خوږ پیغمبر علیه السلام ته عطا کړے شوے علم غیب چي مونږ اذهان دَ هغے احاطه نه شي کولے د، حضرت سلطان الاولیا بایزید بسطامی رحمته الله علیه دَ دے ارشاد ګرامي نه اندازه کیدے شي چي تاسو رحمته الله علیه فرمائیلي

دَ عام مومنانو دَ مقام انتها دَ صالحینو دَ مقام ابتدا وي او دَ صالحینو دَ مقام انتها دَ شهیدانو دَ مقام ابتدا وي او دَ شهیدانو دَ مقام انتها دَ صدیقانو دَ مقام ابتدا وے او صدیقانو دَ مقام انتها دَ نبیانو دَ مقام ابتدا دے او دَ نبیانو دَ مقام انتها دَ رسولانو دَ

مقام ابتدا دے او دَ رسولانو دَ مقام انتها اولوالعزم دَ مقام ابتدا دے او اولو العزم دَ مقام انتها دَ حبیب الله صلیٰ الله علیه وسلم دَ مقام ابتدا ده او دَ الله دَ خوږ محبوب علیه السلام دَ مقام انتها دَ الله پاک نه علاوه هیچا ته نه ده معلومه

یعني خوږ پیغمبر علیه السلام د، علم مقام څوک هم نه شي بیانولے، دَ نبیٰ علیه السلام علم خو دَ لرے خبره ده ، دَ خوږ پیغمبر علیه السلام دَ غلامانو دَ علم یو پړک ملاحظه کړے

حافظ ابوالقاسم سلیمان بن احمد الطبراني (وفات ۳۶۰هجری) روایت کوي؛

وکانی انظر الی اهل الجنته یتزاورون فیها وکانی انظر الی اهل النار یتضاغون فیها فقال یا حارث عرفت فالزم ثلاثا

ترجمه؛ لکه چي څه دَ خپل رب عرش صاف صاف وینم او ګویا چي څه اهل جنت مخه ګورم چي هغوئ دَیو بَل زیارت کوي او چي څه اهل دوزخ ته وکاندم نو هغوی دَ ډیرے لوګي (اوګرے تګرے) چغرے وهي، نو تاسو درے ځل وفرمائیل اے حارث تا دَ (الله تعالي) معرفت حاصل کړو. (بحواله المعجم الکبیر للطبراني، ج ۳ پ ۲۶۶ رقم الحدیث ۳۳۶۷ ط مکتبته العلوم والحکم موصل)

دا دَ زمونږ خوږ پیغمبر علیه السلام دَ یو غلام شان دے چي زمکے نه عرش او جنت او دوزخ مشاهدات کوي

حافظ طبراني صاحب روایت کوي چه؛

حدثنا احمد بن الحسین بن مابهرام ابوعبدالله الایدجی حدثنا محمد بن مرزوق البصری حدثنا هانی ء بن یحیی السلمی حدثتا حسن بن جعفر الجفری عن قتادة عن

يحييٰ بن وثاب عن ابى هريرة قال: قال رسول الله صلى الله عليہ وسلم لما كلم الله موسى كان يبصر ديب النمل على الصفا فى الليلۃ الظلماء من سيرة عشرة فراسخ
ترجمه؛ موسي عليه السلام به دَ ميکو دَ پښو آواز دَ شپې په تيرو ګښې ۱۰ فرسخه لرې نه به واؤريدل. (بحواله؛ طبراني الصغير، باب من اسمه احمد، ج ۱ پ ۳۲ ط. دارالکتب العلميته بيروت)

چې حضرت موسیٰ عليه السلام چې چا دَ رب عزوجل ديدار نه دے کړے تش کلام اے فرمائيلے دَ هغو دَ علم دا مقام دے نو دَ ټولو جهانو له پاره رحمت زمونږ خوږ پيغمبر عليه السلام دَ علم مبارک به څه مقام وي؟ چې چا دَ خپل دَ سر سترګو دَ رب ديار کړے وو؟ لکه چې امام احمد بن حنبل صاحب رحمته الله عليه روايت کړې چې؛

حدثنا عبدالله حدثنى ابى ثنا عفان ثنا عبدالصمد بن كيسان ثنا حماد بن سلمۃ عن قتادة عن عكرمۃ عن بن عباس قال قال رسول الله صلى الله عليہ وسلم رايت ربى تبارك و تعالیٰ۔
ترجمہ؛۔حضرت ابن عباس رضی الله عنه نه روايت کيږي چې رسول الله عليه السلام فرمائيلي : ما خپل دَ رب عزوجل ديدار وکړو (مسند احمد ج ۱ پ ۲۹۰ رقم الحديث ۲۶۳۴ ط، موسسته قرطبته مصر)

دغه شانے امام علي بن ابي بکر هيثمي متوفی ۸۰۷ هجري لوستونکے دے؛

وعن ابن عباس انہ كان يقول ان محمداً صلى الله عليہ وسلم رائ ربہ مرتين مرة ببصره ومرة بفواءده رواه الطبرانى فى الاوسط ورجالہ رجال الصحيح خلا جهور بن منصور الكوفى وجهور بن منصور ذكره ابن حبان فى الثقات

ترجمہ؛ حضرت ابن عباس رضیٰ الله عنهما بیان فرمائيې چي خوږ پیغمبر علیه السلام خپل رب دوه (۲) پیرے اوکتلو یو ځل په خپل سترګو سره او یوه پیره خپل دَ زړه نه، دا حدیث امام طبراني په خپل الاوسط کښے روایت کړے دے او دَ دے سند صحیح دے ماسوا جهور بن منصور کوفيې، امام ابن حبان دَ دے ذکر په ثقات کښے کړے دے او دَ دې رجال صحیح دې.

(بحواله؛ مجمع الزوائد ومنبع الفوائد باب في الرؤیته ج ۱ پ ۷۹ ط دارالکتاب العربي بیروت. مواهب اللدنیه ج ۳ پ ۳۹۷ ط دارالکتب العلمیته بیروت)

امام جلال الدین سیوطیٰ رحمته الله علیه (متوفیٰ ۹۱۱ھ) لیکيې؛

واخرج الطبرانیٰ فیٰ (الاوسط) بسند صحیح عن ابن عباس انه کان یقول ان محمداً صلیٰ الله علیه وسلم رائ ربه مرتین مرة ببصره ومرة بفؤاده.

ترجمہ؛ امام طبراني رحمته الله علیه په (الاوسط) کښی به سند صحیح دَ حضرت ابن عباس رضیٰ الله عنه نه روایت کړے دے چي خوږ پیغمبر علیه السلام دوه ځل خپل رب ووکتو یو ځل دَ سر په سترګو او یو ځلے په زړه دَ سترګو سره .

(حواله؛ خصائص الکبریٰ باب خصوصیته صلیٰ الله علیه وسلم بالاسرا ج ۱ پ ۲۶۷ ط، دارالکتب العلمیته بیروت، /و/ عمدۃ القاریٰ شرح صحیح البخاریٰ ج ۱۹ پ ۱۹۹ ط. دارالاحیا التراث العربي بیروت)

حضرت علامه محمد بن یوسف الصالحيې الشامي په خپل سبل الهدي والرشاد ج ۳ پ ۶۳ ط دارالکتب العلمیۃ بیروت، کښے هوم دغه شانے بیان فرمائیلے دے او حضرت امام شهاب الدین خفاجي الحنفي رحمته الله علیه (۱۰۲۹ھ) دے حدَ پورے فرمائیلي دي چي

ولما كانت هذه القوة حصلت للكليم بالتجلى فحصولها للنبى صلى الله عليه وسلم بعد الاسراء۔

ترجمه؛ یعنی چي کله دا قوتِ بصارت کلیم ته دَ الله دَ تجلئ سره حاصله ده نو زمونږ خوږ پیغمبر علیه السلام له پاره دَ معراج نه پس به دَ دے څه حال (شان) وي.

(حواله؛ نسیم الریاض شرح شفا ج ۱ پ ۳۸۱ ط دارالکتاب العربي بیروت)

یو اهم خبره بله چي ډیر قابلِ غور ده هغه دا چي حضرت امام احمد بن عمرو بن عبدالخالق عتیکي بزار رحمته الله علیه (متوفی ۵۲۹۲) روایت کوي چي؛

حدثنا ابوكريب قال نا سفيان بن عيينه قال نا نعيم بن ضمضم عن ابن الحميرى قال سمعت عمار بن ياسر يقول قال رسول الله صلى الله عليه وسلم ان الله وكل بقبرى ملكا اعطاه اسماع الخلائق فلا يصلى على احد الى يوم القيامة الا ابلغنى باسمه واسم ابيه هذا فلان بن فلان قد صلى عليك.

ترجمه؛ دَ حضرت عمار بن یاسر رضی الله عنه بیان فرمائي چي رسول الله علیه السلام اوفرمائیل: اے عمار! بے شکَ چي الله پاک یوے فریښتے له دَ تمام مخلوق سماعت (اوریدل) عطا کړي دي او چي کله به څما وفات کیږي نو هغه به قیامته پورے څما په قبر باندے ولاړ وي پس څما په امت کښ چي کوم یو نفر هوم په ما باندے درود وائي هغه (فریښته) به دَ هغے او دَ هغه دَ پلار نامه به اخلي او ماته به وائي اے محمد صلی الله علیه وسلم فلانۍ فلان سړي په تاسو باندے درود اووئیلو بیا الله عزوجل به دَ هغے دَ هردرود په بدل کښی په هغه باندے ۱۰ لَس رحمتونه نازل فرمائي.

(بحواله؛ مسند البزار ج ۴ پ ۲۵۵/۲۵۴ رقم الحدیث ۱۴۲۶/۱۴۲۵ ط مکتبته العلوم والحکم المدینته المنورۀ،و، مجمع الزوائد ج ۱۰ پ ۱۶۲ ط دارالکتاب العربي بیروت)

امام عبدالروؤف المناویؒ رحمته الله علیه لوستونکے دے؛

ای قوة یقتدربها علی سماع ما ینطق بہ کل مخلوق من انس وجن وغیرهما
ترجمه؛ یعنی الله پاک دے فرینښتے لره داسے قوت عطا کړے دے چي بنی آدم او جنات او دویٔ نه سوا تمام ترمخلوق دٰ خدائے چي څه دَ ژبه نه وباسي هغه آوؤرې.
(بحواله زرقاني شرح المواهب ج ۵ پ ۳۳۶ دارالمعرفته بیروت)

دَ ټولو فرینښتو سردار حضرت جبرئیل امین علیه السلام دے، امام سیوطی په الجامع الصغیر ج ۱ پ ۱۷۱ رقم الحدیث ۲۸۶۸ دارالکتب العلمیه بیروت کښں فرمائي (الا اخبرکم بافضل الملائکته؟ جبریل) ترجمه (ایا څه تاسو له خبر درنه کم دَ ټولو نه افضل فرینښته چي جبریل دے).

او دا دَ ټول فرینښتو سردار حضرت جبریل علیه السلام زمونږ دَ خوږ پیغمبر علیه السلام غلام او وزیر دے، دا دَ نبیؐ علیه السلام یو خادمِ دربار فرینښتے دَ علم مقام دے نو دَ تمام فرینښتو سردار حضرت جبریل علیه السلام او بیا خپله دَ هغویؒ سردار او آقا و مولا صلیؒ الله علیه وسلم دَ علم مبارک به څه مقام وې؟

امام ابو عیسی ترمذې رحمته الله علیه په سنن شریف کښں حضرت ابوسعید خذري نه روایت کړے دے چي دَ نبې علیه السلام په اهل آسمان کښں دو وزیران دې او په زمکه باندے هوم دوه (۲) وزیران شته دے. په اهل السما کښں خو جبریل او میکائیل (علیهم السلام) دې او په اهل الارض یعنیؒ په زمکه باندے حضرت ابوبکر صدیق او حضرت عمر فاروق رضیؒ الله تعالي عنهم دې. دا حدیث په دے نورو کتابونو کښں هوم روایت شوے دے

(حواله جات؛ سنن الترمذی کتاب المناقب باب في مناقب ابوبکر وعمر ج ۵ ص ۶۱۶ رقم الحدیث ۳۶۸۰ ط دارالاحیا التراث العربي بيروت/ تخريج الدلالات السمعيته پ ۵۳ ط دارالغرب الاسلامی بیروت/ الجامع الصغير في احاديث البشير والنذير ج ۱ پ ۱۴۷ رقم الحدیث ۲۴۳۸ ط دارالکتب العلمیه بیروت / جامع الاحاديث الكبير ج ۲۰ پ ۱۸۶/۱۸۷ رقم الحديث ۱۶۲۴۳ ط دارالفكر بيروت / الفتح الكبير في ضم الزيادة الي الجامع الصغير ج ۱ پ ۳۸۴ رقم الحديث ۴۱۳۸. ط. دارالفکر بیروت / مستدرک الحاکم ج ۲ پ ۲۹۰ رقم الحديث ۳۰۴۷ دارالکتب العلمیته بیروت / تاریخ البغداد ج ۳ پ ۲۹۸ دارالکتب العلمیته بیروت / او/ حلیته الاولیا ج ۷ پ ۱۶۰ دارالکتاب العربي بيروت)

امام مجاهد بن جبر المخزومی التابعی متوفی ۱۰۴ هجري فرمائي؛

عن مجاهد يتوفا كم ملک الموت قال حویت له الارض فجعلت له مثل الطست ينال منها حيث يشاء

ترجمه؛ امام مجاهد رحمته الله علیه فرمائي چي ټوله زمکه ملک الموت له پاره لکه دَ يو تهال دۀ هغه چي ورنه کم څيز غواړي کوم ځاے نه غواړي ونيسي.

(بحواله؛ تفسیر مجاهد تحت سوره السجده آیت نمبر ۱۱ ج ۲ پ ۵۱۰ مطبوعه المنشورات العلمیته بیروت / تفسیر ابن کثیر ماتحت سوره السجده آیت نمبر ۱۱ ج ۳ پ ۴۵۹ ط، دارالفکر بیروت / تفسیر بغوي ج ۳ پ ۴۹۹ دارالمعرفته بیروت / تفسیر الثعالبي ج ۳ پ ۲۱۳ مطبوعه موسسته الاعلمي للمطبوعات بیروت / جامع البيان في تفسير القرآن المعروف تفسير طبرئ ج ۲۱ پ ۹۸ ط. دارالفكر بيروت / الدرالمنثور ج ۶ ص ۵۴۱ دارالفکر بیروت / او / الجامع لاحکام القرآن للقرطبی ج ۱۴ پ ۹۴ دارالشعب القاهره)

علامه ابوعبدالله محمد بن احمد مالكي القرطبي رحمته الله علیه متوفی ۶۶۸ هجري فرمائي

ان ملک الموت ینظر فی وجہ کل آدمی ثلاثمائۃ نظرۃ وستاً وستین نظرۃ وبلغنی ان ملک الموت ینظر فی کل بیت تحت ظل السماء ستمائۃ مرۃ وبلغنی ان ملک الموت قائم وسط الدنیا فینظر الدنیا کلها برها وبحرها وجبالها وهی بین یدیہ کالبیضتہ بین رجلی احدکم۔

ترجمه؛ ملک الموت علیه السلام (دامره عظیم الجثامت دے) چي دَ هغوي سر آسمان کښې دے او دَ هغوي دوانړۀ پخے په زمکه باندے او تمام دنیا ملک الموت ته مخامخ داسے ده لکه یو نفر مخښے ته ترکارے تال پروت وي او هغه ترخوراک کوي

حضرت عزرائیل علیه السلام هر نفر شکل په ۳۶۶ ځله ګوري

حضرت عزرائیل علیه السلام آسمان نه لاندے هر کور ته ۶۰۰ سوه ځل ګوري

حضرت عزرائیل علیه السلام دَ دنیا په منز (وسط) کښې قیام فرما دے او دَ ټوله دنیا صحرا و سمندرونه او غرونه دَ دوي په نظر کښې داسې دي لکه په تاسو کښې دَ یو نفر په بخو کښې انډا (حا) پرته وي

حواله؛ التذکرته في احوال الموتي وامور الآخرۀ باب ما جا ان للموت سکرات الخ ج ۱ پ ۲۸/۲۷ مطبوعه سعیدیه کتبخانه صدف پلازه محله جنګي پیښور

دا یو مختصرذکر وو چي کوم تاسو ووئیلو، نو غور وکړے چي کله دَ خوږ پیغمبر علیه السلام دَ غلامانو دا شان دے نو دَ رب العالمین دَ محبوت علیه السلام دَ علم به څه مقام او مرتبه وي

دَ لغات العرب مشهور امام حضرت علامه جمال الدین محمد بن مکرم بن منظور الافریقی (متوفی ۷۱۱ھ) فرمائي؛

والغیب کل ماغاب عنک ابواسحق فی قولہ تعالیٰ یومنون بالغیب ای یومنون بما غاب عنهم مما اخبرهم بہ النبی امن امر البعث والجنۃ والنار وکل ماغاب عنهم مما انباهم بہ فهو غیب

ترجمه؛ کم څیز چي دَ ستا نه غائیب وي هغه غیب دے، امام ابواسحق دَ (یومنون بالغیب) په تفسیر کښے فرمائیلي چي کوم څیز دَ متقین نه غائب وو او نبی علیه السلام دَ هغے اطلاع ورله ورکړه هغه غیب دے لکه مرګ نه پس راجوندے کیدل، جنت او دوزخ او هغه هرڅیز چي کوم دَ هغو نه غائیب وو او نبی علیه السلام دَ هغے خبر ورکړو هغه غیب دے

(حواله؛ لسان العرب ج ۱ پ ۶۵۴ مطبوعه دارالاحیاء بیروت)

علامه ابوعبدالله محمد بن احمد مالکي قرطبی فرمائیلي دي؛

الغیب فی کلام العرب کل ما غاب عنک غابت الشمس تغیب والغیبۃ معروفۃ واغابت المراءۃ فهی مغیبۃ اذا غاب عنها زوجها ووقعنا فی غیبۃ وغیابۃ ای هبطۃ من الارض والغیابۃ الاجمۃ وهی جماع الشجر یغاب فیها ویسمی المطمئن من الارض الغیب لانہ غاب عن البصر

ترجمه؛ دَ عرب په محاوره کښے غیب هغه وي چي کوم ستاسو دَ سترګو نه پوشیده (پټ مخفي) وي. چي کله نمر غروب شي نو وئیلے کیږي؛ (غابت الشمس) او غیبت معنے خو معروف دي او چي کله دَ خزے خاوند وؤرک شي نو وئیلے کیږي: (اغابت امراۃ) او هغه زنانه (مغیبته) وئیلے کیږي او مونږ (غیبته و غیابه) کښی پریوتلو نه مراد دا دے چي مونږ په ګړهۇ کښے ورپریوتو او (الغیابه) دَ ونو ډک جهنډ ته

وئیلے کیږي چي په کوم ځائے په یو ځاے کښے ډیر څه ونے راجمع شوې وي چه په کښے پټیدے شي او پست زمکے ته (الغیب) وئیلے کیږي چي دَ زمکے هغه حصه نه نظر نه پټه وي یعنی پوشیده وي .
(حواله؛ الجامع لاحکام القرآن للقرطبی ج ۱ پ ۱۶۳ داراحیاء التراث العربی بیروت)

علامه حسین بن محمد راغب اصفهانی (متوفی ۵۰۲ه) فرمائي؛
مالا یقع تحت الحواس ولا تقتضیه بدایته العقول وانما یعلم بخبر الانبیاء علیهم السلام
ترجمه؛ غیب هغه وي چي کوم پینځه واړه حواس (یعنی حواسِ خمسه) کښے نه شي راتلے او نه دَ عقل په مقراض ددے ادراک کیدے شي او تش هغه دَ انبیائے کرامو علیهم السلام نه معلومیدے شي. (حواله؛ المفردات پ ۳۶۷)

امام ناصر الدین عبدالله بن عمر البیضاوي متوفی ۶۸۵ ه لوستونکے دے؛
والمراد به (اي الغیب) الخفی الذي لا یدرکه الحس ولا یقتضیه بدیهته العقل
ترجمه؛ غیب نه مراد هر هغه پټ شئے دے چي دَ څه ادراک نه خو حواس کولے شي او نه هغه دَ عقل په سریع الفهمے په دائره کښے راتلے شي .
(انوار التنزیل ج ۱ پ ۲۸ ط. مصطفے البابي مصر)

علامه قرطبي صاحب په یو بل ځائے کښے فرمائي؛
الغیب کل ما اخبر به الرسول علیه السلام مما لا تهتدی الیه العقول من اشراط الساعته وعذاب القبر والحشر والنشر والصراط والمیزان والجنته والنار
ترجمه؛ غیب (کښې) هغه هرڅه دي چي دَ چا خبر رسول الله صلی الله علیه وسلم راکړے دے په هغه امور کښے چي څه پورے عقل لاره نه شي کتلے یعني علاماتِ قیامت، عذاب قبر، حشر ونشر، پل صراط، میزان، جنت او دوزخ معاملات.
(الجامع لاحکام القرآن ج ۱ پ ۱۶۳ ط. داراحیا التراث العربي بیروت)

علامه ابوالبرکات احمد بن محمد نسفیؒ رحمته الله علیه (متوفی ۷۱۰ھ) فرمائي؛
بالغیب ، بما غاب عنهم مما انباهم به النبیؐ صلیؐ الله علیه وسلم من امر البعث والنشور والحساب وغیرذلک
ترجمه؛غیب نه مراد هغه معاملات دي چي کوم متقین دَ سترګو نه پټ وو او خوږ پیغمبر علیه السلام دَ هغه معاملاتو خبر ورکړو لکه مرګ نه پس بیا جوندے کیدو، حشر نشر، حساب او نور دیګر امورِ غیبیه. (بحواله؛ تفسیر مدارک التنزیل ج ۱ پ ۱۳ ط۔ داراحیاء التراث العربی بیروت)

## دَ لفظِ (نبیؐ) معنے په لغات العرب کښے:

امام کبیر محدث شهیر حافظِ حدیث ابونعیم احمد بن عبدالله اصفهانیؒ (متوفی ۴۳۰ هجریؒ) روایت فرمائي؛
لفظ (نبیؐ) دَ (نبا) ټکي نه مشتق دے چي دَ څه معنے وي خبر او نبي دَ الله پاک ترمخه بذریعه وحي علم حاصلوي او اهل جهان لره خبر عطا کوؤنکے وي. او بعض وائي چه لفظ (نبیؐ) دَ نبوة نه اخذ شوے دے چي دَ څه معنے وي جائے بلند او نبیؐ واقعتاً اعلي تر قسم نه سرفراز کړے شوے وي او هغه دَ الله او دَ مخلوق مابین سفیر نازل شوے وي.........اولنمے منعے په اعتبار سره نبوت او رسالت په مفهوم کښے څه زیات فرق نه پاتے کیږي ځکه چي رسول بروزن فعول معنے وي مرسل یعنیؐ رولیګلے شوے (ځکه فعول بمعني مفعول اکثر استعمال کیږي) اور ورلیګلے شوي نه مراد هوم دا وي چي دے بذریعه وحي دَ علم سره باخبر جوړکړے شوے دے او هَم دا دي نبیؐ معنے دي
(حواله؛ دلائل النبوة لابي نعیم الاصبهانیؐ اردو، پ ۳۶ مطبوعه ضیا القران لاهور)

په منجد کښې لوستونکے شوې دې؛

والنبی المخبر عن الغيب او المستقبل بالهام من الله المخبر عن الله وما يتعلق به تعالي

ترجمه؛ دَ نبي مطلب وې الله دَ اړخه دَ الهام په وجه غيب يا دَ مستقبل خبرے خؤدونکے، دَ الله پاک او ده هغے متعلقاتو خبرونه ورکؤنکے. (المنجد پ ٧٨٤ مطبوعه مصر)

امام قاضی عياض بن موسی مالکی رحمته الله عليه (متوفی ٥۴۴هجري) ليکې؛

النبوة فی لغة من همز ما خوذه من النباء وهو الخبر والمعنى ان الله تعالیٰ على غيبه واعلمه انه نبيه اويكون مخبرا عما بعثه الله تعالیٰ به ومنبا بما اطلعه عليه

ترجمه؛ نبوت هغه نفر په لغت کښې چي څوک (همزه) سره وائې دَ (نبا) نه ماخوذ دے بمعني خبر. مطلب دا چه که الله پاک هغه په خپل غيب باندے مطلع کړو او هغه ته اے وخودل چې هغه دَ الله نبي دے يا هغه خبر ورکؤنکے دے دَ هغه وحی چي کمه الله پاک هغي لره ليګلے ده نو خودونکی دَ هغه حقائق دے چه په څه الله دے خبر کړے دے. (حواله؛ الشفا بتعريف حقوق المصطفي ج ١ پ ١۴١ ط. دارالکتب العلميته بيروت) امام صاحب په يو بل ځائے کښې په دې کتاب کښے فرمائيلې دې چه نبوت معني وې په غيب باندے اطلاع ورکوؤنکے اور دَ نبوت خصوصيات خودونکے

علامه سيد محمد بن محمد مرتضي حسينی زبيدې الحنفی رحمته الله عليه (١٢٠٥ه) فرمائي؛

النبی المخبر عن الله فان الله تعالي اخبره عن توحيده واطلعه علي غيبه واعلمه انه نبيه

ترجمه؛ دَ نبي معنے دې دَ الله دَ اړخه خبر ورکوؤنکے بے شکَ الله تعالے تاسو عليه السلام له دَ خپل توحيد خبر درکړو او په خپلو غيوب باندے اطلاع درکړه او تاسو ته اے ستاسو دَ نبوت مقام وخودلو.

(حواله؛ تاج العروس للزبیدیؒ ج ۱ پ ۱۲۱ مطبوعه المطبعته الخیریه مصر)

حضرت الامام الشیخ المحدث احمد بن محمد قسطلانیؒ رحمته الله علیه (۵۹۲۳) فرمائي؛

النبوة التی هی الاطلاع علی الغیب ۔ ترجمہ۔ دَ نبوت معنے هَم دا وي چي دَ علم غیب خبر لرل (مواهب اللدنیه مقصد الثاني فصل الاول ج ۲ پ ۴۷ المکتب الاسلامی بیروت) هوم دا حضرت امام قسطلاني صاحب په ج ۳ پ ۴۵/۴۶ کښے لوستونکے دے چي (نبیﷺ علیه السلام ته نبیﷺ ځکه وئیلے کیږي چي الله تعالے ورله دَ خپل غیب علم ورکړے دے ..... امام قسطلاني مزید فرمائي په پاڼه ۵۵۴ باندے چي بےشکَ صحابه کرام رضیﷺ الله عنهم کښے مشهور او معروف وو چۀ نبیﷺ علیه السلام ده مغیباتو (غیبونو) علم لري

دے ټول تفصیلاتو مطابق چه مونږ دَ قرآن کریم آیتونو، احادیثونو او دَ سلف الصالحین دَ عقیدو نه سره دَ حوالو واضحه کړو دا شے ثابت کوي چه اهلسنت وجماعت چی بعض گمراهان ورته (بریلویان) وائي دَ هغو عقیده عین اسلامي او دَ حکم قرآن او تقلید ائمه کرام و سلف مطابق ده چي مونږ دَ الله پاک خوږ پیغمبر علیه السلام له پاره دَ کل عطائي علم غیب عقیده لرو، په دې تناظر کښے چي دَ کله نه مکاشفه انتظامیه او مرکز تحقیقات اهلسنت تیر شوې یو څو کاله راسے دلیل دَ پاسه دلائل ورکوې نو مونږ دَ قصد بکښې دَ دیوبند مشرانو حوالے نه دې ورکړې چې هغو سره اے دَ انکار جواز نه پاتے کیږي، دوئي ته دَ امت نه معافي غوښتل په کار دې او خاص طور باندے خپل دَ گمراهے نه توبه ویستل په کار دې، دَ دے ټولو حواله جاتو تصویرونه دَ کتابونو عکسونو سره زمونږ په آن لائین لائبریرے کښے موجود دې چي پته اے په آخیر کښے ورکړی شوے ده، حضرت شاه ولي الله ، حضرت حاجي امداد الله مهاجر مکي او حضرت شاه عبدالعزیز محدث صاحبان چه دیوبند ئے خپل

اکابرین گنړې دَ هغو ټولو هوم دا عقیده وه، خو کله راسے چې دیوبند دَ وهابیانو په مینه محبت کښے دَ اسماعیل دهلوې غلط مذهب قبول کړو نو دَ عقیدے دَ لاسه اے شرمول راغشتې دې ، امتِ مسلمه له خو اے دَ (بریلویانو یا صوفیانو) نوم ورکړو او خپل دَ حنفیت په آړ کښی تبلیغ دَ نجدیت کوې دَ اسلام نه هیڅ تعلق نه لرې ترسو چې توبه ګار نه شې

آخري الفاظ دا چې الله دے ټول مسلمانانو له هدایت ورکړې چه په خپل دین باندے ځان پوهی کړې، بے شک چې قرآن مونږ ته خودلې دې چه کامل علم دَ غیب لکه دَ نور هرڅه تش الله په لاس کښی او اختیار کښے دے او دا هوم دَ هغے عطا اور بخښنه اور بخشش دے چې خپل خوږ پیغمبر علیه السلام له اے داسے عظیم علمونه ورکړې دې که مونږ دَ دے ملیانو په ځائے خپله چې کوم قرآني آیتونه وایو یا دَ حدیثَ کتابونه مطالعه کوؤ نو همیش لره دَ سلف الصالحین او ائمه کرامو تعلیمات وائیے ځکه چې هغه اصل عقیده او تعلیمات دی، او دَ رسول کریم علیه السلام خوؤدلے شوے اسلام دامره کمزورے نه او چې په ۱۳۰۰ سوه کاله کښے اسلام یا مسلمانان خو ټول (کافران یا بدعتیان یا بریلیان یا شیعګان) شول او ټول امت په ګمراهے راغلو ترهغه چې دو نیم سوه کاله وړاندے دیوبند راپیدا شو چې دَ نبي علیه السلام دَ دین بنیاد ئے بیا نه درست کړو. (استغفرالله). مزید معلومات او عکسونه کتو له پاره دَ مکاشفه سائیټ مطالعه وکړے، وآخرالدعوانه

والله اعلم ورسوله

Resources:

http://makashfa.wordpress.com

ahlusunnatwajamat.boards.net

Admin: Imran Akbar Malik

مکاشفہ ورڈ پریس ڈاٹ کوم گزشتہ کئی سالوں سے اہلسنت وجماعت کے عقائد کی جامع اور صحیح حفاظت کا بیڑا اٹھائے ہوئے ہے، جہاں پر عالمِ اسلام کو بنا کسی امتیازِ رنگ، نسل، زبان کے، عقائد پر صحیح ترین نظریات وائمہ کرام کی عبارات کو نہ صرف ترجمہ بلکہ مختلف زبانوں میں تراجم سمیت ان کتابوں تک اور کتابوں کے حوالہ جات تک مکمل رسائی کے ذرائع فی سبیل اللہ مہیا کیئے جاتے ہیں، اور الحمد للہ ہمارے ایڈ منز کے مشترکہ ٹیم ورک کا نتیجہ ہماری عکسوں کی وہ لائبریری ہے جو کہ انٹرنیٹ کی دنیا میں غالباً پہلی اور واحد لائبریری ہے جہاں مختلف النوع موضوعات پر سیر حاصل بحث کے ساتھ ساتھ کتابوں کے عکس پیش کرنے کی سعادت موجود ہے۔ ہماری ٹیم چونکہ بنا کسی امداد کے اپنا کام کرتی ہے اسلیئے ہماری تمام پڑھنے والوں سے درخواست ہے کہ ہمیں اور ہماری ٹیم کو اپنی دعاؤں اور مناجات میں ہمیشہ یاد رکھا کریں۔ نیز ہمارے فیس بک پیج جو کہ (hanafi.sunnis) کے نام سے موجود ہے وہاں پر نئی اپڈیٹس کے لیئے وزٹ کیجئے اور اس کام کو بڑھانے میں ہماری مدد کریں، ہمیں آپ کی دعاؤں کے علاوہ آپ سے کسی قسم کی کوئی مدد نہیں چاہیئے۔ اللہ رب العزت سے دعا ہے کہ وہ ہماری ان کاوشوں کو اپنی اور اپنے حبیب ﷺ کی بارگاہِ بے کس پناہ میں قبول و منظور فرما کر انکو ہمارے اور سب پڑھنے والوں کی عاقبت کے لیئے بخشش کا ذریعہ ءِ نجات بنائے۔

آمین۔ (از، مکاشفہ ایڈمن ٹیم)